# د دشت لاروے

ایم طارق سحر

دے خړ دښکو دشت کښې منزونه لټومه
یو تږے لاروے یمه، یو ستړے مسافر یم!

۱

# د دشت لاروی

کله چه راکړی ساقي ډك جامونه
څه په دیکو دَ یار درشل ته رَسو
سحَره ! مونږ لکه د دشت لاروی
خدايږ زده چه کله خپل منزل ته رَسو

ایم طارق سحر

د کتاب دَ ښخښے سترگے اوُ ښکلا
سهره دَ کران او خوږ ملگری
ښاغلی رخسار علی په سر

سحَر

# ترون

دَ خپل پلار ښاغلی محمد یوسف خان
اَو
خوږې مور په نوم ، دَ چا په
غیږه کښې چې ما پښتو زده
کړېده.

# "زما د کتاب اختیار زما دے"

د کتاب نوم: "د دَشت لاروي"

مصنّف: ایم طارق سحر
ایم. اے پښتو، پښتو آنرز، پشاور
ایم. اے اردو
ایم. اے اسلامی تعلیمات، بی ایډ
محکمه تعلیم
کلي شاه ډنډ لوندخوړ مردان

تدوین او ترتیب: رُخسار علی
ایم. اے لائبریري اینډ انفارمیشن سائنس
ایم. اے سیاسیات

وړومبے ځل: جنوری ۱۹۹۸ء
شمیر: یو زر (۱۰۰۰)
بیَعه: ۴۵/- روپئ
چاپ خانه: نیو سهیل پرنټنګ پریس مردان.
کاتب: محمد ارشاد
د موندلو درک: توحید و سنت بکس سنټر
جج بلډاوبس لوندخوړ بازار
فون: ۳۵۰۱۱۴
(۰۹۳۲۲)

# فهرست مضامین

# د سحر آئینه صفا ده

دبانیزی سیمه که یو طرفته د ازادئ دننګیالو او په تحریک آزادئ کښې بر خه اخستونکو. دتن. بدن او وینے قربانئ ورکونکو نه ډکه ده. نو بل ارخ ته ددے لمن داحساساتو دنغمو زیږونکو او پر کیفه خیالاتو دسندریزو فضا ګانو دخوشبو یو نه هم ډکه ده۔

داکوم کتاب چه ستاسو په لاسونو کښې دے "ددشت لاروئ" ددے لیکونکے دشاه دند. لوند خوړ (بانیزی) اوسیدونکے دے۔ نوم ئ محمد طارق سحر دے دپیدائش کال نے نو لس سوه شلو رشپیته یعنی ۱۹۶۴، دے۔ دجان خیلو دپلو دمحمد یوسف خان زونے. ددرو ندمشر تاج محمد خان کاکا (مرحوم) نمسے او دفیر نګیانو ددورد ستر مشر او منصب دار ملک میر حسن خان کړوسے دے۔ دے په قام قبیله دپښتنو دلوئ قبیلے "خټک" یوو کړے دے۔ او شجر نسب ئے سیخ میرنی ننګیالی او تورزن خوشحال بابا ته رسی۔

سحر صیب په ډیره کم عمرئ کښې په کنړو علومو مهارت او پوهه لری۔ ده دجامعه پیښور نه په پښتو. پښتو انرز. اردو او اسلامی تعلیمات کښې دماسټر ډګرئ ډیر په ښه پوزیشن تر لاسه کړی دی۔ بی۔ایډ ئ هم کړے دے۔ او له تیرو اتو کالو راسے د درس وتدریس په خدمت کښې مصروف دے۔

موصوف داول نه خپل تعلق دجومات سره ساتلے دے۔ تقوی خلوص. مینه. درد. زغم. سنجیدګی. وقار او خودی د ده د ذات داسے خاصے دی چه دے ئے منفرد جوړ کړیدے۔

د ښاغلی سحر کوشش چرے هم د جمود ښکار شوے نه دے۔ او هم دغه وجه ده چه په ډیر کم عمر کښې دے د ادب په تمامو اصنافو قلم ازمائی کوی۔ نظم، غزل، رباعیات او قطعات واړه ئې دخیال د زانګو نه د قلم په ژبه کاغذ ته سپارلی دی۔ ټول اصناف ئې په یو جدا او منفرد انداز کښې لیکلی دی۔ د نظم او غزل نه علاوه نثر هم لیکی او هغه هم د افسانو په شکل کښې۔

په زړه تر اوسه م حسینے افسانے پرتے دی
کومے چه ذهن ته راغلی ارمانونو سره

د سحر صیب د کلام اکثره برخه د ژوند خورو ورو حقیقتونو ته تهذیبی تناسب وربخښی۔ مینه به چا نه وی کړے؟ خو بعضے شاعر داسے خان ثخرګند وی لکه چه مینه بل چا کړے وی یا کوی ئې او دے صرف د شعر یا غزل ونیلو یا د نوخه خوانئ فرض ادا کوی۔ داخبره د ښاغلی سحر په باره کښې بالکل اپوټه ده۔ د ده په شاعرئ کښې د زړه له کومی مینه او درد شامل دی۔ مجازی او حقیقی دواړه مینے ئې د زړه په کور میلمنے دی۔ د مینے عنصر خو دے ازلی تحفه ګنړی او ډیر د احسان سره ئې قبلوی۔

دا پښخوانے مینه ده او دا ازلی مینه ده
دا پټے وعدے دی دانسان دخپل جانان سره
داپه کائنات کښې آدم ته رب بخښلے ده
وائے خله سحره! چه درکړی ئې د احسان سره

د ښاغلی سحر په شاعرۍ کښې دمجازی مینے هغه ټولے ښے ښانے موجود دی څه ته چه منت، انتظار، سوز، خفګان، ګیله اؤ نازک احساس وئیلے شی اؤ کله چه دے ډیر خفه شی نو ښه غزل اولیکی۔ اؤ خما په خیال دا ټولے دمجازی مینے ښکاره اؤ واضحه ښے دی۔

زه په مزه مزه به وانیمه خوږے سندرے
غزل به لیکمه دخپل زړه دداغونو سره
خما جانان خما شعرونو له خلا ورکوی
دجانان غم په ما دډیرو احسانونو سره

دښاغلی سحر کلام د خلوص اؤ مینے په یو لوئے میدان خور دے ۔دده شاعری د ترتیبی ژوند نه عبارت ده اؤ دخیال سلسلےۓ د زړیدو نه دی۔

خما د خیال سلسلے نه زړیږی که زمانے یا څو پیرۍ پرےواوړی
دهجر سوز به د سحر باقی وی که شل کالونه یا صدۍ پرےواوړی

ښاغلے سحر دعمر په ښاغه برخه کښ دے څه ته چه شباب خوانی یا لیونتوب وئیلے شی۔ بیا هم د پښتو ادب سره د هغه مینه ژوره مینه ده ۔ددغے له برکته دے د پښتو ادب ناوے له ډیر په خلوص سنړه سترګه کوی اؤ د دے دپاره د یو ښکلی محل جوړولو خوب وینی اګر که دډیرو کوششونو اؤ تیندکونو نه پس هم وی۔

زه د پښتو ادب دپاره یو محل جوړوم
منزل به اوموم دډیر و تیندکونو سره

د سحر د کلام اکثره برخه د دے خبرے واضحه ثبوت دے
دے د خپل انداز یو رومانی حقیقت پسند دے۔ دده د شاعرئ مختـ
اړخونه د حسرت اؤ تمنا نه خالی نه دی۔ خکه چه دے هغه پیاوړ
میړنے خلمے دے چه دبیوفائ د ستمونو زغملو نه پس هم د دیدن حسـ
په زړه کښ لری اؤ د محبوب له اړخه راوړی پیغام ته تنده نیولے ښکار

په مینه کښ عیب نشته که گناوی نو هم وی دے
قاصده! لږ په جار د بیوفا خبرے اوکړه
چه څه ئ درته وئیلی. همه واړه که بیان
بیمار زړه چه مروغ شی د اشنا خبرے اوکړه

ښاغلے سحر د خپلو زمکو، قافیو اؤ ردیفونو په خپله موج
دے۔ اؤ رښتیا خبر[illegible] داده چه ده په خپل کالام کښ د لفظونو سوداگری نه
کړے۔ څه چه پرے تیر شوی دی، هغه ئ بیان کړی دی. د ده کلام دد
خبرے غمازی کوی چه۔

دنیا نے تجربات و حوادث کی شکل میں
جو کچھ مجھے دیا ہے وہ لوٹا رہا ہوں میں

زه پخپل بخت ډیر ویاړ کوم چه ښاغلی سحر د خپل
دشت لاروئ" په ړومبنی صفحو کښې تاسو ته د مخاطب کیدو موقعه
لاس راکړه۔ حقیقت دا دے چه د کتاب سریزه لیکل دومره آسان کار نه
ے بله داچه دا د کتاب نچوړ او آئینه وی۔ او زما غوندے دادب شوقیه
رستونکی دپاره دا لوئ امتحان دے۔ دا د ښاغلی سحر خپله مینه او
خلوص دے چه دا کار ئے ماته اوسپارلو۔ رښتیا خبره داده چه خما دا
ظهار د هغه د مینے او خلوص په بدله ډیر کم دی۔
په آخر کښې د زړه له کومی دعا کوم چه د ښاغلی سحر
دشت لاروئ" ته د مینے پیرزویانے او په تیره تیره دجانان د غیږے
تو شبویانے نصیب شی۔ خکه چه دده مینه او آئینه دواړه صفا دی۔ او
ئے اظهار ئے په خپله څه دا رنګه کوی۔

د غرونو ګټے م په هر یو قدم
دپاکے مینے ګواهی ورکوی
په سوړ سحر د بے وفا جانان
مازیګری یادونه مه راسپړه

په ډیر خلوص

رخسار علی

پی۔ایم۔اے۔ڈی

پیښور کینټ ۳ ستمبر ۱۹۹۷ء

# د ایم طارق سحر شاعري

ایم طارق سحر یو ښه تعلیم یافته او د پښتو ادب یو نوموړی شاه زلمے دے۔ د پښتو ژبے سره د ده مینه پیدائشي او ازلي ده۔ ده خپل علمي ذهني او تخلیقي صلاحیتونه د پښتو ادب د روزے دپاره وقف کړیدي۔

د سحر صیب په شاعرۍ کښې نه یواځے د پښتنو د زړه احساسونه پراته دي بلکه دهر انسان هغه احساسات تخیلات او جذبات ئې چیرلي دي په کومو زړونو کښې چه لږ درد هم موجود دے۔

خان به تول لوګے کړم دزړه سره تابه خاورے کړم
سترګے به رندے کاندم نظره تا به خاورے کړم
حسینه شهزادګۍ به زه د زړه د تل نه اوباسم
پریږدم به سوچونه اے خیګره تابه خاورے کړم

سحر صیب غزل، نظم، رباعي ، قطعه او آزاد نظم ته قلم وراندي کړیدے۔ په نظمونو کښې دژوند کائنات او د دنیا بے ثباتي ذکر کوي۔ "ژوند خاموشه ادیره ده"، "ماته او وایه رشتیا"، "تاته یاددي او که نه" " د ګودر بدنصیبه جینکۍ" ، او "ستورې" ئې دادبي خوږ والي سره سره معنوي او مقصدي خوږ والے هم لري۔ ددے نه علاوه "یادونه مه راسپره"، "اے بادشاه دکائناتو"، "تپوس"، "د چاپه یاد کښې"، "داد چا کلے دے" او " دتصور نه نه ځے" ئې دستائینے وړ آزاد نظمونه دي۔ چه پکښے فن ۔دژبے خوږوالے او مقصدیت ډیر په روانۍ سره موجود دي

هغه کوشے به خدائیگو یادے لرم
کومو کښې ما چه قدمونه ایښی
هغه قیصئ به ښتولے یادے لرم
کومو کښې ما چه خپل یادونه ایښی

شکریه

پرویز مهجور خویشگی
ریسرچ افیسر پښتو اکیډمی
پېښور یونیورسټی
(پاکستان)

د سحر صیب په شاعرئ کښې دمجازي مینے ګیلے، شکوے، دبے وفا محبوب نه د فریاد خبرے په ډیر سوز اؤ دردسره وئیلے شوی دی- د ده په شاعرئ کښې حقیقي مینه، کومه چه هغه خدا داده تحفه ګنړی څومره په ښکلی اؤ دردمنده لهجه کښې موجود ده لکه وائی-

مینه، مینه، مینه م راوړے ده د ځان سره
کله چه زه راغلم مخامخ شوم د جهان سره
کله چه پیدا شوه ملائیک هم بے خبره وُو
دا دستر ګو راز دے د جانان دخپل جانان سره

لنډه دا چه دپښتو ادب په نوی نسل کښې داسے ښکاری چه سحر صیب خپل منزل ته ډیر په تیزو قدمونو روان دے، که چرے سحر صیب خپله ادبی مطالعه اؤ دشعور تجزیه، فطری ارتقا، اؤ رفتار برقرار اوساتلو نو دا امید کیدے شی چه دپښتو ادب دپاره ښے ښے نمونے پیدا کړی-

# خپلې خبرې په خپله ژبه

هسې په رسمي خبرو دچا قیمتي وخت ولې خراب کړم؟ کتاب ستاسو په لاسونو کښې دے. څما دکچه اؤ ناپوهه احساسونو نچوړ دے. تاسو ته ئې ډیر په خلوص وړاندے کوم.

خندا زما نه څه شوه، مستي څما نه څه شوه
یو درد ینمه خاموشه یو ساز یم غلے غلے
یو ګل د ګلستان ووم اوس پاڼره رژیدلے
یو ستوري دآسمان ووم اوس په زمکه لاندے غلے

څما د شاعرئ په کره کتنه خان مه کړوئ. بس دیو وار خطااو بے ګودره انسان خبرے ئې او ګنړے خکه چه دلاروي اؤ وار خطا انسان خبرے هم دا رنګے وي.

"د دشت لاروئ" څما د احساساتو ورومبنې مجموعه ده. زه د ادب په میدان کښې دیو ادنی طالب علم حیثیت لرم. خپله ادبي پوهه نه لرم اؤ نه زه د کتاب لیکلو جوګه یم خکه چه کتاب لیکل د هر چا د وس خبره نه ده. کتابونه دژوند تشریح. دکائناتو رموزونه اؤ د عقلیاتو اؤ اخلاقیاتو پرانسته وي. اؤ زما دومره پوهه چرته؟

په آخر کښې زه دخپل خوږ ملګري ډیر مهجور خویشګي ډیره شکریه ادا کوم چه څما په شاعرئ نے خپه رانے ورکړه او څما حوصلے نے اوچتے کړے.

مناسب گنڑم چه دخپل گران ملگری رخسار علی
(پی-ایم-اے-ډی) دزړه له کومی شکریه اداکړم د چاپے کچه فنی مهارت
اؤ ادبی پوهے چه څما خور وور کلام ته دکتاب شکل ورکړو اؤ زه نے
ددے چاپ کولو ته راپارولم-ده چه دترتیب اؤ تدوین په سلسله کښې ډیر
په اخلاص کوم کوشش کړیدے زه هغه په لفظونو کښې نه شم بیانوے-
نور دکتاب اؤ ستاسو مینځ کښې خلل نه جوړیږم او فیصله په
تاسو پریږدم-

ډیره مننه

ایم طارق سحر

محکمه تعلیم

## انسان ته

ښو مره لوئے احسان دے اے خالقه انس و جن سره
راغے کائنات ته بے جامے ځی د کفن سره
نن آدم انسان دے سبا بیا دخاورو ځلے دے
پام کوه تیریږے چه په خوا کښې د مدفن سره

## یو شعر

مه مے لټوه په دے چمن کښې زه به نه یم
بدلیږی رابدلیږی آستانے د مسافرو

# هو العلی العظیم

خما خدایه ماله ښکلے سو کالی د جهان را
چه نه ریږی نه ختمیږی ماله هغه کالان را

د جهان دا طبیبان م په علاج کله پوهیږی
چه تل زړ و نه پرے رغیږی ماله هسے درمان را

تل محفل به د دنیا وی لو یه خدایه زه به نه یم
پس له مرګه چه م یاد کړی ماله هسے یاران را

څه سحر که نعرے کاندم د آه و بکا د کے
چه پرے زړ و نه تکوریږی ماله هغه زبان را

# صلو علیه و آله ۱۹

بادته م زاری ده چه سلام م ورته یوسی
هغه چه مکین دے د حجاز او د یثرب

دے په کل عالمو کښې خائسته له هر بشره
وائی چه دردو پرے فرشتے او د عرش رب

د مینے په رباب دے د ښائست سندرے وائم
زړګے م په ماتم دے د زخمت سندرے وائم

په واړه کائنات کښې دے جلوے راته ښکاریږی
ګویا یم په ثنا دے د قدرت سندرے وائم

د هجر په مزل کښې م پولئ په خپو وتلی
منزل م نامعلومه دفرقت سندرے وائم

نو میده نه یم خیر دے خو طامع ستا دکرم یم
نن خکه په چغار دے درحمت سندرے وائم

په مینه ددنیا کښې م زړه ډوب دے خپله خدایه
کړے دا ګناه م کمه په عجلت سندرے وائم

ستا عشق کښې لیونے شوم په صحرا کښې چرته ګرځم
چه ګفت م له خلے خیژی د الفت سندرے وائم

تکمیل ته کله رسی که هر څو آه وزاری کړم
نیمګړے م ارمان دے د حسرت سندرے وائم

# مور (نظم)

چه په دنیا م سترگے وا کړے نوما مور اولیده
کله چه سترگے مابینا کړے نو ما مور اولیده
رانه چاپیره تول خپلوان وو خو مانه پیژندل
چه م د زړه سترگے رنړا کړے نو مامور اولیده

ډیر په نازونو اؤ په مینه لویولم مورے
له ډیرے مینے به په مخه ښکلولم مورے
دے معصوم زړه چه به م کله دغه ضد راواخست
مجبورے مور لکه دگل به زه ساتلم مورے

وخت لکه باد به تیریده دلته خلمے شومه زه
لکه د پانړو رژیده دلته خلمے شومه زه
خما خوانی خما د مور د امیدونو اسره
ډیری په زړه راروییده دلته خلمے شومه زه

دائ ارمان وو دخوئ ناوے به ډولئ کښیں وینم
دے رونړ تندے اؤ هم مسکے به خوشحالئ کښیں وینم
نه بده ورخ نه ئ غمونه پیرزو کړی په ما
همه عمرونه خما غم دے خوشحالئ کښیں وینم

ما چه کاته دمور ویښته په سپینیدو راغلی
غاښ ئ په خله کښې خوزیده په غورزیدو راغلی
په ماخوواردخوانئ راغے خودےوار خفه کړم
ما ته تیر وخت هزار هزار په یادیدو راغلی

مور دے خفه نشی سحره! دا الله وئیلی
دمور دخپو لاندے جنت رسول الله وئیلی
هم ئ بچے، هم ئ اسره اؤ دزړه سر ئے ته ئ
خوږے خبرے ورته تل کوه الله وئیلی

زه یم د غم غم دے څما اوس د بیدیا ملګرے
زړه م داده دے راسره شو په صحرا ملګرے

اول به ماته ځان یو ائے ښکاریده څه حیران ښکاریده
اوس راسره د جانان غم شه په خندا ملګرے

ډیر په مزه مزه روان ووم پریشانه غوندے
ستا د قدرت نښے م شولے د تنها ملګرے

دے رار وان خو ما پروانه کړ له مخکښے تلمه
اول تنها ووم راسره شو دا ګدا ملګرے

څه زمانه؟ څه ئ حالونه؟ تصور ئ ښه دے
سحره! غم له غټے ورکړه شه رښتیا ملګرے

مینه، مینه مے راوړے ده د ځان سره
کله چه زه راغلم مخامخ شوم د جهان سره

دا پخوانۍ مینه ده او دا ازلی مینه ده
دا پـه وعده د انسان د خپل جانان سره

مینه پیدا شوے کائناتو نه اوله ده
دا پـه تحفه ده د خپل رب دهر انسان سره

کله چه پیدا شوه ملائیک هم بی خبره وو
دا دسترګو راز دے دجانان دخپل جانان سره

دا په کائناتو کښې آدم ته رب بخښلے ده
وائے خله سحره چه در کړۍ ئے داحسان سره

خلق وائی مینه څه ده محبت خو پوخ یقین دے
د آدم د روح آواز دے دانسان د زړه آئین دے

گمانونو نه ډیر لرے فاصلو باندے اوسیږی
مخلوقاتو نه ډیر لرے په جونگړه کښې مکین دے

ناپوهانو ته په مخکښې فلسفه د قرآن څه ږدے؟
نوم حبیب د محمد دے، محبت نوم دائمین دے

که م سر له عقل راشی مینه نوره رنړا اوکړی
پر وت په تکه توره شپه کښې بے بستره بے بالین دے

هر کلے مینے ته وائم خم راخم هغے کو څوله
خیوانان راخی په مخه که سحر یا ما سپخین دے

# تاته یاددی اؤ که نه (نظم)

آزما او ستا په مینځ کښې چه اقرار وو
تاته یاددی اؤ که نه
آو عدے ستا دو فا
ستا دزړه اؤ خلے گفتار
تاته یاددی اؤ که نه
وو لطفونه چه په ما
اؤ کرم خما په حال
ماته یادزړه زړه
مهربان پما دلدار وو
تاته یاددی اؤ که نه

هره ورځ نوے گیلے
دمزے مزے قیصے
په وړه وړه خبره
مرور به یو تربله
تاته یاددی اؤ که نه
کله ناست چه په محفل کښې
اشارو باندے خبرے
اؤ دمینے هر بیان به

که خبره چرته داسی
چه ستا زړه به نه غوښتله
"وئیل مخکښې داپکار وو"
تاته یاددی اؤ که نه
چه ناڅاپه ملاقی شو
نو وفادے زبادوله
اؤ ګیلے دملامتے
ملامته چه باربار وؤ
تاته یاددی اؤ که نه

آدوصل دشپے ورانه
ستاخبره نه منل
آ،نه ،نه ،ادا اؤ انکار وو
تاته یاددی اؤ که نه
څوک چه تاګنړه اشنا
تاچه وے دے بے وفا
زه هغه یمه سحر
باوفا اؤ بااقرار
تاته یاددی اؤ که نه

داستا د مینې په اظهار رانه جانان جدا شو
ځما د زړه ټولې قیصې، هر یو داستان جدا شو

عقل او حسن ورته لمسه او کړه ولې آخر؟
ښکاری بے ننګه او بے پته، هغه ګران جدا شو

ما خو بخښلے دا خپل خان او خپل جهان په مینه
زخمی زړګی له لړ ور ځمه، چه ارمان جدا شو
نن د سحر نه وفادار او ځو مره ګران جدا شو

# دراز قیصئ

خوږے خوږے نغمے م په سبا کښې اوریدلے
د فکر په لمن م په رو رو راخوریدلے
ځه شور د کائنات وو، ځه غوبلے د زړګی وے
چه غوږم ورته کیښود، ئ دراز قیصے وئیلے

هغه کوڅے به خدائیګو یادے لرم کومو کښې ما چه قدمونه ایښی
هغه قیصئ به تولے یادے لرم کومو کښې ما چه خپل یادونه ایښی

د تصور دنیا چه ګورمه زه وجوو او روح یوشان خما خوږیږی
چا طبیبانو ته به ئ ښائمه زه، کومو کښې ما چه خپل دردونه ایښی

دڅوندون پانړے کهٔم پریوزی خلقه ذرے ذرے شی اؤ ایرے ایرے شی
بیا هغه خاورے به راواخلمه زه کومو کښې ماچه خپل خیالونه ایښی

کله چه غم نه د دنیا او زګار شم اؤ پخوانی یادونه زړه ته راشی
زه په زارو زارو به ژاړم ورته کومو کښې ماچه خپل غمونه ایښی

یا به خوانئ ورباندے اوشیندمه یا لونګین به م دغاړے ښار شی
خوری به تالے تالے جوتے په سینه چرته چه ما خپل حسرتونه ایښی

که ئ غمونو وارخطا نه کړمه کله ناکله به حالونه پوښتم
ورخم تپوس له به ورخمه آخر کوم ځائ چه ما مازیګرونه ایښی

د سوی زړه سوی خیګر سحره! چاته دے وائے ته دغم افسانے
د بے خبرو نه ئ پټ کیږده چرته چه تا نور داستانونه ایښی

# نو رمے مه کړوه

اے ښما مينے نو رمے مه کړوه
خدائيګو په تمو تمو ستړے شو مه
اے ښما مينے نو رمے مه
ډير په کاته کاته دے ستړے کړمه

ماخو ژوندون له خوشحالی غوښتله خو خوشحالی ښما نصيب نه شو
اے ښما مينے نو رمے مه کړوه
لکه فقير در ته سوالونه کړمه

زه په سلګو سلګو سحر ژاړم
دچا په هجر کښے له ډيره درده
اے ښما مينے نو رمے مه کړوه
زاړه خوبونه قلارے له راکړه

# د زړګی په خاطر

عالمه ژوند که مے په دار دے د زړګی په خاطر
ماته قبول که سور انګار دے دزړګی په خاطر

کله ژړا کله فرياد کړی کله غلیی غلیی

زه به د زړه حالونه چاته وائیم، هغه دنیا خو ښوله ورانه شوله
زه به د زړه زخمونه چاته ښائم، هغه دنیا خو ښوله ورانه شوله

زه په نارو نارو ډیر ستړے شومه، خو دیوالونه چاته غږ نه کوی
خوشے کنډرے به زه څنګه ستائم، هغه دنیا خو ښوله ورانه شوله

مینه م در په در رسوا ګرځی، ډیره رسوا شوله بے کوره شوله
داخپله مینه به اوس چاته سپارم، هغه دنیا خو ښوله ورانه شوله

ماوے دا ښول عمر قائمه به وی، دورانیدو نه بے خبره وومه
دالوټے لوټے کور به څنګ رغوم، هغه دنیا خو ښوله ورانه شوله

خیر که څما دخیال دنیا وی ورانه، سحر عادت شوم دغمونو سره
خو دخوږ زړه فریاد به چاته وائیم، هغه دنیا خو ښوله ورانه شوله

# پښتو ژبه (نظم)

قلم راواخله اے سحره! یو داستان اولیکه
یا د ایران د فلسفی له گلستان، اولیکه

وی مثنوی که د رومی یا د سعدی خبرے
فارسی نچوړ که په پښتو ژبه بیان اولیکه

دقلم دارے دے ورد رومی دمشرق په لوری
بابو نه پرانیزه د علم په افغان اولیکه

څوک نے سامی له نسله گنړی چاریا گنړله
هیڅ تغیر هم پکښ نه راځی گردان اولیکه

دا شاهی ژبه به محمود اؤ ابدالی وئیله
په هندوستان شوله داخله دائے شان اولیکه

پښتو زړه ده اے سحره اؤ زړه پاتے شوه
راپیده شوے په باختر ځائے یی افغان اولیکه

# اے بادشاه د کائناتو (نظم)

اے خالق د کائناتو
اے مالک د کائناتو
اے بادشاه د کائناتو ددے خلقو نه م پټ کړه
ما یو داسے ځائے ته بو زه
بندی کس هلته کښ نه وی
ما یو داسے ځائے ته بو خه
چه هیڅوک م خوا کښ نه وی
زه یو ائحے چرته ناست یم
دخپل خیال په مشغولا کښ
دخپل رب سره خبر ے
دخپل ځان سره خبر ے
که بیمار شو مه هم خیر دے
دتپوس م دے څوک نه وی
دپو ښتنے دے څوک نه وی
خیر دے زه که بے اسرے یم
اے بادشاه د کائناتو ددے خلقو نه م پټ کړه

گیر چاپیر دے خاموشی وی
گیر چاپیره دے چپیا وی
خو چه څوک م خوا کښ نه وی

انسان نه دے درنده دے
هم دنیت نه هم دخلے نه
چه بل کس ورنز دے کیږی
هم شلول که هم داړل که
نو مالرے چرته بوځه
اے خما خوږه خالقه
اے بادشاه دکائناتو ددے خلقو نه م پټ کړه

ته مالک دټول جهان ئ له جهانه خبر داری
ته خالق دهر بشرئ له انسانه خبر داری
عجیبه زمانه راغله عجیبه وختونه دادئ
دا څه کیږی؟ دا څه اوورم؟
اے بادشاه دکائناتو ددے خلقو نه م پټ کړه

که زه مړ شومه هم خیر دے
او په لاش م ځلے نه وی
خیر دے ورک دے شم فضا کښی
مړوجودم دے هم خورشی
خو چه څوک م خوا کښی نه وی
اے زما خپله خالقه، ددنیا ژوندون بیګار دے
اے زما خپله مالکه، ددنیا ژوندون یو وار دے
نو ما داسیی خایی ته بوځه
چه هیڅوک هلته کښی نه وی

چه یو ائحے هلته زه یم
دخپل خیال په مشغولا کښې
په خیالونو مشغولیږم
په فکرونو مشغولیږم
په یادونو مشغولیږم
اے بادشاه د کائناتو
اے دکل جهان خالقه
اے دکل جهان مالکه ددے خلقو نه م پته کړه

ځان به ټول لوګے کړمه څیګره تابه خاورے کړم
سترګے به رندے کاندم نظره تا به خاورے کړم

ستا رنګین خیالونه به د زړه د تل نه اوباسم
پرے به نږدم سوچونه زوروره تابه خاورے کړم

کومیی اندیښنے م چه په زړه دننه ایښی دی
ټولے به لوګے کړم دزړه سره تابه خاورے کړم

. اړے به زه لاړشمه ددے شینکو باغونو نه
ځان به کړمه خاورےاؤ دلبره تابه خاورے کړمه

صرف تصور به م په زړه دننه پاتے شی
تت به شے پخپله تصوره تابه خاورے کړم

بیا د یار لیدو ته به خوب کښې انتظار کوم
مړه چه شی سحر ډیوه ساغره تابه خاورے کړم

# دسیند په غاړه

ښکاریږی چه ډوبیږم په یو داسې سمندر کښې
اوبه یی تولې خړې دی چپې چپې روان دی

د بره نه ئ د څان سره راوړی دی خزلے
غور رنګ وهیی رادرومی عجیبه غوندے طوفان دیی

ساحل باندے ولاړ یم چه څه اوموم په غاړه
خو دلته خشی پشی دی نیمګړے م ارمان دے

که غواړے نو ورکوز شه چه څه اوموے پخپله
لاهو نشم ویریږم دلته عقل م حیران دے

په غاړو ساحلونو ملغلرے چا موندلی
کشتئ سره سیندونو کښې خواران چه ملاحان دے

ساحل راته په چپه چپه خله باندے دا وائی
په غاړه چه ودریږی له موج کلهٔ په امان دے

حما د خیال اؤ تصور گلونه، همه به مړاوے وی اؤ زه به نه یم
حما د زړه هغه خوارۀ غمونه، همه به خاورے وی او زه به نه یم

آنشئیی دمیو دک خمونه، به هیڅ خمار اؤ هیڅ مستی اونکړی
که راواپس شی لیونی وختونه، لمحے به نورے وی اؤ زه به نه یم

هاغه نیازبینے ژبے تتے به شی، خورے ورے به خاموشۍ غوندے وی
دک محفلونه عجیبه سرونه، نغمے به ښکلے وی اؤ زه به نه یم

تبر په لاس م محبوبا ولاړه، جوړے وزرے م د ژوند پریکوی
سمسور گلونه هم رنگین باغونه، پانړے به گورے وی اؤ زه به نه یم

قسمته نښیے م چه ورانے نه کړے، گنی خفگان په زما لاسیوا شی
پریږده چه گورم افسوسونه دژوند، زمانے نورے وی اؤ زه به نه یم

یو حقیت اؤ صداقت هم چرے، پټیدے نه شی له هیچا سحره
دے میخانه کښ به هم دا ساقیان، راپسے سترے وی او زه به نه یم

ځما د خیال سلسلے نه زړیږی
که زمانے اؤ ځو پیړئ پرے واوړی

زما د خیال غوټئ به اونه ریږی
که طوفانی تیزے سیلئ پرے واوړی

دا همیشه داسے رنګینے به وی
که ډیر وختونه څه مودے پرے واوړی

د انتظار ډیوه به مړه م نشی
که ډیرے ورځے ډیرے شپے پرے واوړی

د سبا ستورے به افق ته کوز شی
که د هجران تورے تیارے پرے واوړی

د هجر سوز به د سحر باقی وی
که شل کلونه یا صدئ پرے واوړی

# دا د چا کلے دے؟

ډیر په افسوس چه ورته گورم دا د چا کلے دے
داسے ښکاریږی، جوړ خما د محبوبا کلے دے

چه ئے زمانه زړه نظر، او عقل تول وړی دی
لا ژړوی م دا دهغے، لاپروا کلے دے

دا تش کاته زړگی له نور نور حسرتونه راوړی
په انتظار م زړه خوښیږی دلیلا کلے دے

زه چه له ورایه ورته گورمه نو غریوم نیسی
زړگے م هم شی ښپه نیولے جوړ ے دا کلے دے

دختو لوتو او ویرانه دے ساده کلی کښی
زړه رانه ورک دے دا دهغے هوش ربا کلے دے

رانه په تورو تیارو ډوب شی دماښام خړو کښی
لمبے لمبے ! لوگے لوگے ! د دلربا کلے دے

چرته راپیښه به خما په لوری او کړی که نه؟
په طمع طمع ورته گورم د اشنا کلے دے

زما د زړه دنیا د خوڼ کړه بیالاړے ګلے
راباندے خوڼ لګی دا کلے، دادچا کلے دے

سحر و لاړ په ډیر ادب د خپل جانان کلی ته
دیو ظالم او ستم ګر او بے وفا کلے دے

# ګیله

لاړه مسافر د مسافرو کډے بار شولے
شو به ملاقی، که په ژوندون بله موقع راغله

خلق بے وفا وی تیراؤ هیر به شے سحره
ځان سره ئے وایه که دے زړه له څه ګیله راغله

که ته راځے راشه تادی اوکړه روان ئمه زه
خما په سیمه لویی منزل دلته پریشان ئمه زه

تاسره ما چه د وفا کومے وعدے کړے وے
زه مسافر شوم درنه لاړم اوس پښمان ئمه زه

بیا پته نه لږی چه څه مخه په ژوند پیښږی
ماته معافی کوه دلبره ستا جانان ئمه زه

دام ده نښه چه درياد شمه پرے خان مشغوله
بار بار یی گوره لیتوه پکښ عیان ئمه زه

ستا د خندا نه پس ژړا راغله غریب اونیولم
دتسلئ اسباب م نیشته اوس گریان ئمه زه

مسافری سخته خواری ده سحر اومنله
له یار جدا، ژوندون په دار اؤ تول هجران یمه زه

# زندگي يو بيابان دے---

زندگي يو بيابان دے پکښې سره اورونه بل دي
پکښې بلے شمعے ښکاري، زه ئے دلري تماشه کړم

په ظاهره رنګينئ دي خو دارنګے سرے سيزي
بلے بلے لمبے ښکاري زه ئ دلرے تماشه کړم

زړه م واني ورنز دے شه تماشه ئے نز دے او کړه
خو فکرونه ليوني دي زه ئ له لرے تماشه کړم

ماته پته ده چه څه دي، دښائست دننه څه دي
که ورځم هلته م سوزي، زه ئ دلرے تماشه کړم

څه دڅوندهمه رازونه، څه خمونږ دزړه غمونه
هر سحر ماښام بليږي، زه ئ دلرے تماشه کړم

# دتصور نه نه ځے

خما ښیښته محبوبا! زما د زړه دلربا
ځما د خیال نه نه ځے، د تصور نه نه ځے

څومره مودے اوشولے څومره وختونه اوشول
ځما وجود کښې اوسی، ځما ځیګر نه نه ځے

ډیر ژړیدلے ئمه ډیر کړیدلے یمه
لکه د اوښکو د رود مے د بصر نه نه ځے

ښکلے خوږے صنمے! اے باوفا محبوبے!
زما په ژوند قابضے، د ټول دفتر نه نه ځے

ته لا پروا د زمان، ته لاپروا د مکان
منم منمم دلربا، دشوروشر نه نه ځے

افسوس په داسیی نصیب، په بے نمکه ژوندون
بیا هم مادی دور کښې خیال دسحر نه نه ځے

زه به ټول عمر په تمو تمو تیر کړم
آخر دا چه تورے سترگے به ړندے شی

تمامی عمر به ستا یادو کښې تیر کړم
آخر دا چه دا زړگے به م ایرے شی

ټولے لارے به داستا د راتلو څارم
په آخر کښې داجذبے به م زړے شی

خوله ډیرو تمو پس به مرگے راشی
لو گے شوے روح به اوراو کړی لمبے شی

عزرائیل ته به ژړا او منت کاندم
د سحر انتظاری سترگے به مړے شی

مات ټيکرى ټول کړه دوباره ترے کوزه جوړه که
پاسيږه کولاله دوباره ئے ښيښه جوړه که

ستا دګوتو حسن دے که حسن دخيالونو دے
تلے حسن راوړه دوباره ئ مزه جوړه که

داسے ئ رنګين کړه چه دلرے هم حسين ښکارى
تورے ختے واخله په مزه ټوے ټيکه جوړه که

ستا دکولالى رنګه کولاله اشنا زارشمه
رنګ ورته لږ ډير که دوباره ئے رنګينه جوړه که

رنګ ختے که نه وى زه به لرے پسے لاړ شمه
رابه ئے وړم له لرے خوئے ته حسينه جوړه که

خلق خو وائی چه په ذکر قلاریږی زړګے
دیار د نوم په اخیستو څنے صبریږی زړګے

د جانان ذکر وظیفه کړو ما صبا او ماښام
چه څوئے نوم اخلم زیاتیږی لا خوږیږی زړګے

د راز او نیاز په ورخو شپو کښ چه یقین شی پیدا
هله قدم واخلی روان شی نه اودریږی زړګے

د زړګی لار چه د خلے لار سره خپل لار یوه کړی
په خله که هر څه بیاراځی نه پرے دردیږی زړګے

که چرے مینه د سینے لاندے زړه پاتے شوه
فائده به اونه کړی سحره! که ژړیږی زړګے

45

# حسرت

په زړه تر اوسه م حسینې افسانې پرتې دي
کومې راغلیې چه ځما دارمانونو سره

زه په مزه مزه به وایمه خوږې سندرې
غزل به لیکمه دخپل زړه دداغونو سره

ډیره اوږده ډیره خوږه ده دجانان قیصۍ
تل به ئې وائیمه دډیرو فریادونو سره

زما جانان ځما شعرونو له ځلا ورکوی
دجانان غم په ما دډیرو احسانونو سره

زه د پښتو ادب دپاره یو محل جوړوم
منزل به او مومم دډیرو تیندکونو سره

داامانت به راسره وی دچانښې به وی
د جانان غم غلطوم به په آهونو سره

سحره ! پرې نه ږدې دژوندانو دجانان خبرې
ژوند به تیریږی دې اوس ډیرو تکلیفونو سره

خما به اوښکے بهیدے اۆ زه خبر نه وومه
لکه باران به وریدے اۆ زه خبر نه وومه

د غم نه ډک زړګی م اووے په ژړا ژړا کښ
ستر ګے ستا یاد کښ ژړیدے اۆ زه خبر نه وومه

پوهیدم نه پرے چه رسئ وےاو که زلفے دیار
لکه ښالونه ځنګیدے او زه خبر نه وومه

زمانه پټ ئ په مزه مزه زیګون کولو
ډیر په رورو به خوزیدےاو زه خبر نه وومه

د شګو ینډ بندوے نشی د ژړا بحرونه
هر سحر اوښکے وریدےاو زه خبر نه وومه

# شپه (نظم)

چه تر وږمے شی هر مارغه دخپل اشیاں په طرف
په شاته نه گوری روان وی د صحرا په طرف

ده ته خودنه نه چا کړے نه ئے چل زده کړے
خو چه مابنام شی دے روان وی دائے چل زده کړے

هر یو بچے دخپلے مور د راتگ لارے څاری
په انتظار انتظار سترے دا رنگ لارے څاری

چه لږ بے وخته شی په جاله کښں غوبل جوړ کړی
بے قراری ددوی په ژوند کښں یو خلل جوړ کړی

توره تیاره شوه گیر چاپیره یو تورتم جوړ شو
تیاره خوره شوه په مزه مزه تورتم جوړ شو

پاس په آسمان کښں سپینو ستورو یو خلا کوله
ټولگی ټولگی ځنو یواځے مشغولا کوله

په دے تورتم کښں کله سپوږمه اوازونه کول
چه یو به غپ که نو به نورو هم غپونه کول

په دے خاموشه خاموشئ کښې يو خطر پروت وو
ټوله دنيا هسے خاموشه يو کنډر پروت وو

ما تير وختونه يادول اوده کيدمه ګله
په پټو سترګو يادېدل اوده کيدمه ګله

نا څاپه خوب کښې راله مخے له يو غږ راغے
هلته ايسار، چه م کاته يو نامه‌بر راغے

شوم وار خطا اؤ ما پوښتنے د جانان کولے
زه ايسار نه شوم ما غندنے د ارمان کولے

خو چه ما سترګے غړولے، نو بيا هيڅ هم نه وو
نه م جانان وو اؤ نه غږ وو هلته هيڅ هم نه وو

ما چه په ټتو سترګو او کاته سبا ښکاره شو
د سبا ستورے په آسمان کښې په خلا ښکاره شو

په دے خوبونو کښې شپه تيره شوه سبا راغے
نارے وهي سحره! درته دے ګدا راغے

# تابه تول عمر یادومه (نظم)

اے خماسوی خیگره،اے خما ظالم دلبره
تابه تول عمر یادومه، تابه تول عمر یادومه
چه یو خوږ دلبر خماوو، سوی سکور خیگر خماو
خان به تول عمر سوزومه، تابه تول عمر یاد
دا ربنتیادی چاوئیلی چه ده مینه محترمه
په ما گرانه محترمه، تابه تول عمر یادومه
زه به کړمه ستا خبرے یا به کړم دخان خبرے
ستا په یاد به خان سوزومه تابه تول عمر یادومه
ستا پینتو به یادومه، ستا وعدے به یادومه
دپینتو دکه صنمه تابه تول عمر یادومه
زه به وانمه سندرے دخپل روح په ربابونو
مړه تارونه به تنگومه تابه تول عمر یادومه
ستاظلمونه به زه شمارم تیروختونه به زه ژاړم
صحرا گانے به لټومه تا به تول عمر یادومه
تاچه څه راکړه دلبره زه دخان سره نیے وړمه
هر سحرے بنکلومه، تابه تول عمر یادومه

چه زړه دے تنګ شي په دنیا کښې خما خواله راخه
اوس پرېږده دوه زړے خبرے مشغولا له راخه

زه ووم تنها تنها به یمه خو تر کومے اخر
پردے وطن دے زه تنګیږم ملګرتیاله راخه

نو ےم کور نو ے جونګړه زه عادت نه یم
په ماماتم دے که راځے نو بس دعاله راخه

داسره خاپونه ستا دشوندو ما داغونه ګنړل
زخمي زخمي شوم اے طبیبه زر دواله راخه

توره تیاره ده بیناسترګے م ړندے شوے پکښې
د وتولار خانله رنړا که خما خواله راخه

زه بے اسرے او بے نوا که یم مقیم به یمه
سحره نن خولرے کیناستے بیا خواله راخه

# سترے فکر

اے وخته! سترے فکرم ته لا سترے کوے
ما پرېږده په قلار شه ته ما بیا سترے کوے
ژوندون خو زه منمه صرف خیال او تصور دے
احساسه! سترے زړه م ته نور لا سترے کوے

# دګودر بدنصیبه جینکۍ (نظم)

نن مازیګر کښې په قبله باندے باران راغے
پاس په آسمان توره تیاره شوله طوفان راغے
امبار امبار وریځے ګرځی ځنے تورے تورے
دستر ګورپ کښې یو تورتم پاس په آسمان راغے

جوړه مشرق کښې هم بریښناده ټول آسمان ځلیږی
لکه د سرو تارونو هار چه په ګریوان ځلیږی
کله چه پړق شی زه لمنه د جانان اونیسم
توره تیاره راته سوراورشی چراغان ځلیږی

اوبوله تلے په ګودر کښې جینکۍ ګیرے شوے
منګی په سر باران پرےاوری ښاپیرۍ ګیرےشوے
په جام اوبو ترینه ساه خیژی خوزغمی ئے مدام
ګودره وران شے داد ځه کړه سیلانۍ ګیرےشوے

واړه منګی ترے اوبو یوړل چه لاهو شوے کله
ډیرےنارےسورےئے کړلے چه لاهو شوے کله
دا پښتنے هلته له سختے او له تندےمړےشوے
سوےسلګے ئے هم کولے چه لاهو شوے کله

په تور ماښام کښې شوه غوغا اؤ يو ماتم جوړ شو
شپانه بيديا کښې چغے والے يو تورتم جوړ شو
کله چپے قلاريدے او کله تيزے به شوے
دغره په خړو کوتګو کښې يو لوئے غم جوړ شو

داهسيې سخت طوفان عمرونو کښې يو وار راځی
هره بريښنا کښې تندرونه هم بےشمار راځی
ځو داسپيرے وے دژوند جام نے په ماښام تمام شه
ګنی ګودر ته ځينکئ قطار قطار راځی

# ځما تنديه !

خما تنديه ماته حال اووايه، زه به ترڅو په انتظار کښې يمه خپل منزلونه به زه اوموممه، که مسافر به زه په لار کښې يمه ښکاری په لاره کښې تياره غوندےده، مشال دمينے بل که لار کښې يمه يا به خماستر ګے ړندے غوندےوی، يانا خبره به تور غار کښې يمه

زړه م خاموشه خاموشۍ کښې څه وئيل غواړی
دومره زخمی دے چه خوږېږی او ژړل غواړی

د زړه فرياد چاته په وازه خله کولے نه شم
د دے محفل عادی شه دا هم چلول غواړی

په آزادۍ به زه منښتے د خپل رب اومنم
د غلامۍ جالونه مات کړه ماتول غواړی

دا نابينا سترگے ئې ستا دراتلو لارے گوری
جانانه دے تا په رندو سترگو ليدل غواړی

سحره! پرانيزه چه گرځی په باغونو ښکلے
قيدی مرغے چرته ميرو کښې چغول غواړی

# دادیرے په خوا کښې

اے د خاور گورستانه! څومره غلی غلی ښکارے
پراته دلته انسانان دی خو ته څلی څلی ښکارے

زه پرېږدمه دے ښار کښې عجیبه غوندے بازار دے
انسانی وجودشی خاورے خدایه داڅنګه روزگار دے

ښه خوانان دے خاورے کړی، ښائسته جونه پرتے دی
وو ښئیسته ښکلی مخونه هغه غوښے ئ ورستے دی

اے د خاور قبرستانه! د هډوکو گورستانه!
اژدهے درکښې پرتے دی، لړمان درکښې پراته دی

ټول عالم درنه یرېږی جوړے دلته کښې څه چل دے
کتابونه راته وائی ستا په خونه کښې اوربل دے

کله سار کله ماښام شی په دے اوږدتسلسل کښې
راروان یم غلیی غلیی زه دشپو ورځو غوبل کښې

دژوندون ورځے تیرېږی بس دستر گو په خمبل کښې
ستا په کور کښې دیوه نیشته، نه رڼا ستا تے محل کښې

زه نیازبین یمه د مور، زه نیاز بین یم د جهان
دا یو سوال درنه کومه، روح م نه کړے په لړزان

زه یریږمه لتانه دسپیرو خاورو لحده
زه به ډیر عمر اوسیږم د ژوندو ایرو لحده

دلته چپه چپاسیئ ده، ستا په خوا کښې خاموشی ده
دلته غږ اوریدے نشی، ددے خوارو بیوسی ده

اے دگورتوره لحده، اے د خاور گورستانه!
زه یریږمه لتانه! زه یریږمه لتانه!

قاصده خواله راشه دلیلی خبرے اوکړه
پریشانه م زړګےد دلربا خبرے اوکړه

زړګے مے بے قراره د ژوندخنے مزه نیشته
خوږے راباندے لګی د ښکلا خبرے اوکړه

په مینه کښ عیب نیشته که ګناوی نو هم وی دے
قاصده لړ په جار د بےوفا خبرے اوکړه

قاصده خواله راشه یمه ډیر خفه پریشان
د ښکلی یار، دناز اؤ د ادا خبرے اوکړه

چه څه ئ درته وئیلی همه واړه کړه بیان
بیمار زړه چه م روغ شی داشنا خبرے اوکړه

زما د زړه قرار دپاره اووایه رازونه
د ښکلی د محفل اؤ مشغولا خبرے اوکړه

بیلتون ذرے ذرے کړم راته اووایه حالونه
سحر درته منت کوم رښتیا خبرے اوکړه

# ستوری (نظم)

دورخے پټ وی خو چه شپه شی په آسمان خلیږی
داسے ښکاریږی جوړ په سیمه د جانان خلیږی
په خله خاموشه ددوی سترګے د حیا نه ډکے
کله ښکاره کله فنا کله روان خلیږی

په سپین رخسار ی شنه خالونه ګیر چاپیر کیښول
چرته رنګی چرته ئے ګنړ په بم و زیر کیښول
دسبا ستوری ته نژدے شه څه خبره کوی
نازک لاسونه ئے منینو نه چاپیر کیښول

ښو له دنیا چه شی اوده ستوری راویښ شی ګله
سترګے بنیا کړی دهر او وینی بیادوی پخپله
عالم ته ګوری دوی له لرے تماشه ی کوی
د شپے تمامه شپه څوکئ کاندی خلیږی ګله

دا واړه ښکاری دوی کښې لویه فلسفه پرته
سپوږمئ هم او کوره خلیږی څنګ ښینسته پرته
دا واړه نه دی ددے کښې لوئے د قدرت ښښے
نن د سپوږمئ هره شغله غلے خفه پرته

# وطن (نظم)

ځومره ښائسته ځه مزيدارے د وطن نظارے
ټول دی ګلونه که نے شمارے ذ وطن نظارے
دلته دنګ غرونه ټول خاموش څنګه نشه ولاړ دی
چرته پرتے شاړے هوارے د وطن نظارے

څنګه خاموش په ټول روان دی دوطن سيندونه
په حال دقوم خنے پريشان دی دوطن سيندونه
غوږ چه زه کيږدم دسرور ښکلے نغمے غږوی
ماله خوب راشی اؤ ګويان وی دوطن سيندونه

داسے خلمی دی ماليدلی د وطن په سيمه
اوس دی خاموش دخاورو ځلی دوطن په سيمه
خان ئ ستی کړو خو ترعمره داديوے بلے شوے
وينے ئ خپلے بهيولی د وطن په سيمه

ننګ په وطن او کړه راپاسه چه ګلزار شی وطن
چه د بے کسو غريبانو سبزه زار شی وطن
پيغلے دے ستائی وائی ستا دپت او ننګ سندرے
توره راواخله له غمازو چه وزګار شی وطن

دغه مے ټول وس وو اے زړ گیه نور مے مه چیړه (2
یار د ظلم کړس وو اے زړ گیه نور مے مه چیړه

دا سزا مے ډیره چه په ژوند دے راله راکړله
قید د عمر بس وو اے زړ گیه نور مے مه چیړه

کله چه غم ډیر شی په ژړا ژاړئ کم کړمه
عشق دیار عبث وو اے زړ گیه نورم مه چیړه

غم دیار زیاتیږی اے سحره غور رنگونه کړی
نن خو یو په لس وو اے زړ گیه نورم مه چیړه

## یاد

ترڅو به زه لو گیږم خی فریاد خما په بره
چپے چپے رادرومی هر یو یاد خما په بره
پوکے راکه چه اوسوزم ایره شمه بے وسه
مشرق نه به راځی صرف یو یاد خما په بره

## زه به کله بار کړمه!

زه به کله بار کړمه، بل طرفته لاړ به شم
چرته چه سپرلے وی زه به هلته کښې میشته شمه
نورو ورشوګانو کښې به خپلے خیمے اولګوم
څم به د صحرا په لور، سپرلی نه چه خفه شمه
یا به ځان رسوا کړم پسرلی پسے به ګرځمه
ژوند به دیو شپون کومه پریږده چه غرځه شمه
هر خانه بدوش په یو ځائے څو ورځے قیام کوی
کله چه زه بار کړم نو به هله په مزه شمه
ژوند سحر بخښلے دے صحرا، بیابانونو ته
روح م چه بس او خیژی نو زه به په دمه شمه

## ارمان

چه قدم پورته انسان کړی داستانونه ترے جوړیږی
وخت چه تیر شی او فنا شی ارمانونه ترے جوړیږی

زه غور زیږمه بے ځایه څوک م نه نیسی لاسونه
دجانان غمونه دیر شو اوس زخمونه ترے جوړیږی

# دلحد آواز (نظم)

په تور لحد کښې زه بندي پروت يم
رام شه خواله لږ خبرم واخله
ستا انتظار کښې زه ستي پروت يم
رام شه خواله لږ خبرم واخله

ماته خو هيڅ ددر تلو رو نيشته دے
سترگے م ستا درانگ لار ے څاري
په انتظار په ما ماښام شي گله
چه مسافر وي دارنگ لارے څاري

کله چه رانه شي قضا ماښام شي
شم بے نوا او بے اثرے پاتے شم
نه م څوک وو نه م څوک شته پاتے دي
په زړگي دارنگه گيلے پاتے شي

په ماانبار شولے منو نه خاورے
د گور بندي يمه در تللے نشم
دابه احسان وي که ته راشے گله
زه خو قيدي يمه در تللے نشم

زړگيه صبر شه بس سر کيږده
داتور لحد دے کلے کور نه دے
دلته کښې هم مے خپل جانان سحره
زړه ته نژدے دے دومره دور نه دے

د هجر سختے تیرومه د وصال په طمع
چه نن غوتۍ وی صبا گل شی د جمال په طمع

ماته په خوب کښې راپه یادشی ستا دمینے وعدے
خوب رانه او تښتی راویښ شم دوصال په طمع

ما ته ئ راکړه پکښې ښکاری ستا دحسن نښے
دمینے شپے ورځے تیر ومه په ملال په طمع

چه شلیدے نشی دا زنجیر د غلامۍ منمه
دومره نادان چه منتظر یم د وبال په طمع

سحره مینه بازاری شوه نن خلوص نیشته
ماضی م هیر خکه کړیږم زه د حال په طمع

قاصده ورشه آخری سلام م او رسوه
څه درنه هیر نشی هر یو پیام م او رسوه

دغم په جام کښې تلوسیی دی څه پریشانه غوندے
لارے که بندے وی هم خیر خو جام م او رسوه

چرته ایسار نشے هغه دروازے بندے نشی
ګنی ارمان، زړه به م داغ شی نام م اورسوه

که چرته روح م په سلګو سلګو کښې لاړو رانه
زه انتظار په مړونی کړم، په پام م اورسوه

یره کوم چه قاصد هغه درته نشی ورتلے
زما بیدارے مینے داپیام م او رسوه

تورے تیارے دی محبوبا په توره لاره روان
سحره! راوړه رنړا او رک ګلفام م او رسوه

چرے به هیر م نشی خپل دادخوانئ خوبونه
راته به یاد وی هیر به نکړم داترا خه دردونه
ما په قطار قطار لیکلی دی دروح په پاڼو
چرے به هیر نکړم جانانه ستا خواږه غمونه
دژوند په نورو ساحلونو به یٔ وائمه زه
کله چه زړه ته م وریادشی ستا زاړه یادونه
دیرے مو دے نه مے دستر گو نه خوبونه تلی
چام پټ کړیدی دستر گو نه خواږه خوبونه
چه پرے خوږ ے سندرے وائی روح له رنگ ورکوی
د ژوند نغموله راپیده کړه داسے نور سورونه
سحره! مه کوه زړه چاودے فریادی خبرے
فریاد خو لا تازه کوی د زړگی مړه اورونه

چا زخمي کړے يم زړګی نه ښکاروینے ښاڅی
راوړه مرحم چه په زخمونو باندے اوتړمه

خپلو زخمونو ته چه ګورمه يريږمه زه
څه خوږلن راوړه چه دردونو باندے اوتړمه

طبيب دے نه راځی زه طمع دطبيب نه کوم
خپل ليونتوب به زنځيرونو باندے اوتړمه

که درنه لاړم په زارو زارو به ژاړے ګورے
د مينے حال به تش يادونو باندے اوتړمه

بيا په يو اوږد انتظار باندے به ډير سټړے شے
زه خپل قدم به احساسونو باندے اوتړمه

سحر به رانشی تياره به وی دمينے په لار
نازونه ستا به ارمانونو باندے اوتړمه

# دبرمول صحراته (نظم)

یو دوه خبرے اوکړه نن تپوس له نیم راغلے
ځوانی دے راله څه کړله، مستی دے راله څه کړه

صحراله تندے مړه شے زه دے هم له تندے مړ کړم
هغه مے کدے څه شولے ساقی دے راله څه کړه

خپل ژوندم واپس راکه زه واپس ئ درنه غوارم
خندا دے راله څه کړله خودی ئے راله څه کړه

ساقی حیرانه مه شے میکدے ویرانه نه شے
خمار دے راله څه که صراحی دے راله څه کړه

جواب ئ راله زر راکړه صحرازه درنه ځمه
سحر دے راله څه که ماښامی دے راله څه کړه

# ځم کوڅو له د جانان

ټول غمونه به راغونډ کړم ټول دردونه به راغونډ کړم
دا ایری ایری به یوسم ځم کوڅو له د جانان

نور م هیڅ غمونه نیشه، ځما نور دردونه نیشته
خپله مینه ورله وړمه، ځم کوڅوله د جانان

چه یٔ اووینی پخپله اوٚ قدم ورباندی کیږدی
مینه خاورے م شی ځمه، ځم کوڅو له دجانان

احترام دے یٔ لږ کاندی دابه روح وی ایرے شوے
سره اورونه بلومه ځم کوڅو له د جانان

که هر څه راته راپیښ شی زه به ځمه.ځمه.ځمه
پښه نیولے به ورځمه، ځم کوڅو له د جانان

تاریخونه به شی پاتے، ټش دردونه به شی پاتے
نن وړمه ماتمونه ځم کوڅو له د جانان

تر محشره به رانشم بیا په لور دکبرژن
آخری ځل باندے څمه ځم کوځوله دجانان

تول غمونه ماسره دی تیر یادونه ماسره دی
نن وختی سحری ورمه ځم کوځوله دجانان

## آه

دے خرِ د شګو دشت کښې منزلونه لټومَ
یو تږے لاروے یمه یو ستړے مسافر یم
زما د ژوند خبرے به دشتونه درته کاندی
دلاش چه ئے څوک نه وی هغه مړے مسافر ئم

## بے ثباته ژوند

خندا زمانه څه شوه؟ مستی زمانه څه شوه؟
یو درد یمه خاموشه یو ساز یم غلے غلے

کله کله به یادومه دهجران تراخه وختونه
کله کله به ښتګومه زه دغم سوی تارونه

زه به وائمه سندرے د خپل خوږ زړګی دپاره
په مزه مزه به ستائم د جانان خوا ږه لوظونه

ماته یادے دی دلبره ستا وړے وړے خبرے
څما روح ته به هم یاد وی دهجران سوی داغونه

زمانے که ډیرے واوړی او وختونه ټول بدل شی
خپل جانان به یادومه، څه خپل سوی ارمانونه

عجیبه غوندے تحفه ده چه مدام به ما سره وی
تر لحده به هیر نه کړم د خپل سوی زړه آهونه

## رښتونے مینه

زما زړه ته نن اووے خپل نظر او خپلے مینے
د عشق په صداقت مے لږ گمان غوندے راغلے

یو ژوندے چه تیریږی دهجران په سرو دشتونو
زما د ژوندون خواله څه طوفان غوندے راغلے

صفا صفا به وانیم د جانان اؤ خان خبرے
ستا درد اؤ خما غم په ټول جهان غوندے راغلے

دا ستا د ځوانئ عمر اؤ دا ستا عجیبه حسن
په زړه اؤ وجود دروغ وے یو ارمان غوندے راغلے

ونه ئ تس نس کړه که د خیال دنیا یی ورانه
پسپاشو نن سحر هسے پښمان غوندے راغلے

# "خیبر"

څه خاموشه خاموشي ده ددے غرونو سلسلو کښې
د ژړا غوندے آواز دے ددے غرونو په اوبو کښې

هر یو بوټے ئ خاموشه خان له نورو جداګنړي
دګنګرو غوندے شرنګار دے ددےغرونو په سیلو کښې

زما عقل په درزا شي چه زه اوګورم قدرت ته
څومره خوند څومره مزه ده ددےغرونو په لیدو کښې

داخواره واره پراته دي ته به وائے چه ویران دي
لوئے تاریخ اؤ لوئےداستان دےددےغرونو په قیصو کښې

یو ساده غوندے رواج ئ د ژوندون خانته ټاکلے
ښه سکون ښه اطمینان دے ددے غرونو په میرو کښې

دا یو شپول د پښتو نخوا دے هم د لرے هم د برے
څه ناشنا شانے جذبے دي ددے غرونو په زلمو کښې

دا چه خانله خانله ښکاري دا دختو لوټو کلي
دا یو ننګ یوه پښتو ده ددےغرونو ورخو شپو کښې

ډیر عالم دلته ډیره دی د مودو راسے اوسیږی
همه عمرے تمام دے ددے غرونو په تیارو کښ

حق حیران یمه سحره! ددے خائے ښکلی ژوندون ته
ښه عادت دی داو گړی ددے غرونو ورخوشپو کښ

# دجانان دکوشے خاورے

څه چه نن د دین دنیا دغمه آزاد کړے
دامنزل خو ماچرے پخوادے تسخیر کړے

لږه شانتے خاوره ئے دیار دکوشے راکړه
ماترے په مزه مزه یو کور دے تعمیر کړے

# تپوس (نظم)

تپوس کړم له وختونو هم له زمکې له اسمانه
جانان دے راله څه کړو هغه ګران دے دراله څه کړو

امید نه کړم پوښتنه له خیالونو تپوس کاندم
ګنګس لیونے ګرځم چه داستان دے راله څه کړو

هر بوټی نه تپوس کړم کړم له هر کاڼړی پوښتنه
له هر یو مسافره چه کاروان دے راله څه کړو

سحر نه زه تپوس کړم ماښامی نه تپوس کاندم
رټم انتظارونه چه د رمان دے راله څه کړو

باغبان نه هم تپوس کړم له شبنم پوښتنه کاندم
خزان نه کړم پوښتنه ګلستان دے راله څه کړو

د اوښکو نه تپوس کړم محبت مے وار خطا دے
پوښتنه له خودیی کړم هغه شان دے راله څه کړو

خواب په ژړا راکړی "ستا دلبر خو دلته نیشته"
سحرم ستر ګے سرے دی چه جانان دے راله څه کړو

# دچا په یاد کښې (نظم)

اے خما دګلو څو کے! اے خما ښنسته دلبر ے
دا م خیال هم نه وو خدائیګو
چه به داسیی هم را اوشی
ته خما دزړګی داغ ئې
ته خما دزړه درمان ئې
زه به ټول عمر غمژن یم
زه به ټول عمر زخمی یم
په دے دو مره اوږد ژوند کښې
دے خوره وره دنیا کښې
ستا پو تے غوندے ارمان
ستا ذره غوندے ارمان
ډیر نیمګړے غوندے ښکاری
ډیر نیمګړے غوندے ښکاری

بس ژړا در پسے کړمه
چه خیالونو ته دے کوزشم
ته خما دزړه ارمان ئې
او زه ستا دزړه ارمان یم
ماته پته ده حسینے
خپل زړګی راته وئیلی
ستا دسرو سترګو حالونه

خوزه هیخ و نیلے نشم
بیوسی رانه چاپیره
تمامی عمر به ستائم
ستا خیالونو کښې به گرځم
ستا فکرونو کښې به گرځم
ستا سوچونو کښې به گرځم

خان یو ازے راته ښکاری
ستا دمینے په دنیا کښې
که شی حوره دفردوس
نه م مینه پرے ماتیږی
نه زړگے م پرے خوږیږی
بس هم ته زړه ته نزدےئ
که ژوندے یمه که مرمه
تاته سوال کوم دلبرے
لږ دخدائ دپاره راشه
چه زما حالونه ووینے
چه یقین دے شی پخپله

داوختونه به تول تیر شی
دادردونه به تول تیر شی
زه به مړ شمه ستا یاد کښې
ته به نه ئ خما خوا کښې

پس له مرګه نازنينې
چه دقبر خواله راشې
زه به او سپړم رازونه
زه به وائمه حالونه
بيا به هيڅ هم کيدے نشي
تورو خاورو کښې به پټ يم
زه به مړ يمه حسينې

کله کله خما ياد کښې
دزړے مينے دپاره
دمزار خبرم اخله
کښينه خوا کښې م دخلې
او دعا به راته کاندې
چه په مړونې يم خوشحاله
نو بس اے زما دلبرے اے خما دګلو ښانګے!
آخرې حسرت م دادے
دازما نصيحت واوره
هر سحر به انتظار کړم
ماښګر به انتظار کړم
دراتګ لارے به څارم
دراتګ لارے به څارم

دزړه ښاخ کښې مے زنګیږی زیړے پاڼړے دخزان
ژوند چه خو مړه ښکته درومی لاسیوا که نو رارمان

دیقین چراغ مے لاس کښې خو چراغ مے رڼرانه کړی
با ده بل طرفته مخ کړه مړ مے نه کړے چراغان

ماوے زړه به مے ارام کړه دغمونو به خلاص شم
خدائیګو نو رهم خو بولے لاشوه دیر سترے ستومان

مسافره روانیږه وراندے خه ناوخته کیږی
زړکی بل یو قدم ایښے په یو نوی بیابان

هغه ستورے د ماښام شه چه تمامه شپه مزل کا
اے سحره! پټے نښے شه ورکه په کل جهان

# یادونه مه راسپړه (نظم)

خما نیاز بینے مینے مه راسپړه
راته زاړه یادونه مه راسپړه
هسے نه نور درنه زخمی نشمه
آ پخوانی یادونه مه راسپړه

پرېږده خما د امیدونو دنیا
پرېږده خما د آرمانونو دنیا
ما په قلاره باندے پرېږدوه لږ
هغه خوارږه یادونه مه راسپړه

باغبانه مه چیړه حسینے غوټئ
مه چیړه هسے نازنینے غوټئ
پرېږده چه خاورےشی هغه گلونه
آ کاغذی گلونه مه راسپړه

زه بے طبیبه اؤ هجران وهلے
په ټکورونو ښه کیدے نشمه
آ د جنون اؤ د جانان قیصئ
هاغه زاړه خوبونه مه راسپړه

له ډیره سوخته طوفانی سیندونه
موجونه نه وهی ساړه ښکاری
چرته لاهو نشمه زه ورپکښې
هاغه ساړه آهونه مه راسپړه

کله چه ماوته را یاد شی گله
بیا به زه نښے د جانان گورم
دژوند په نور رود گروو باندے
آ جانانی خیالونه مه راسپړه

دغرونو گټے م په هر یو قدم
دپړکے مینے گواهی ورکوی
په سور سحر د بیوفا جانان
مازیگری یادونه مه راسپړه

# کلکه اراده

لار د پښتو که غره یزه وی پروائے مکړه
ستون چړے نښے په دالاره به مرام ته رسو
شاړے بنجرے به راځی اؤ گړنگونه ځنے
ځان به رسو ومازیگرے وی، که ماښام ته رسو

# دمینے خودی

نن م داسے شراب څښلی اؤ په داسے خوب اوده نم
گمان دا دے چه به وینښ د اسرافیل په شپیلۍ نشم

عبث وس خپل اؤ خپلوان رابانده کاندی پاڅه وینښ شه
خو په داسے خوب اوده یم چه بس پاسیدے نشم

ډیره پوهه م نصیب کړله داستا درنو غمونو
غمه لرے شه ما پریږده هسے نه [illegible] لیونے نشم

که م هیر کړی، زه نے هیر کړم د دستور خلاف ورزی ده
خما مینه کښې خودی ده ځکه هلته ورتلے نشم

په یو داسے صحرا سرشوم چه م زړه پکښې بو گنیږی
راسره خوا کښې ځوک نیشته ځکه حال ونیلے نشم

اے سحره هسے نه چه زمانه دے وروسو پریږدی
تولے لارے به بیابندوی ورپسے رسیدے نشم

# ځما خواله دنه راځی

دا مې وصیت دے اخری سلګو کښې وانیمه
مړ که شمه زه په مرګ ځما خواله دے نه راځی

زه که ووم کفن کښې او هغه م ننداره کوی
مخ مې دے څوک پټ کړی محبوبا خواله دے نه راځی

ما له به په مړونی ډیر عالم خواله راغلی وی
هسې به هم مړ نم کبریا خواله دے نه راځی

کله چه زه پټ شمه د خاورو انبارونو کښې
ځلی له دے نه راځی ځما خواله دے نه راځی

غلی په زه پروت نمه ګیلے به کوے نش
ځکه بیا په ناز او په ادا خوا له دے نه راخ

سترے به زه پروت نمه په خاورو به آرام کوم
نه دے راځی خواله دلربا خواله دے نه راځی

مینه به م خاورے شی وجود به م هم خاورے شی
دے سحر پښیمانه خو ځما خواله دے نه راځی

# کوشے له به ورځم

جانان مے ناراضه دے چه په څه به پخلا کیږی
ګیلے به ورله ورمه اوس کوشے له به ورځمه

داستان به بیانومه زه دهجر د فراق
خوبروله به ورځمه اوس کوشے له به ورځمه

ریباره لرے درومه نن کوځو نه د جانان
په خپله به ورځمه اوس کوشے له به ورځمه

عادت نه یمه زه دومره دسختو دهجران
فراق مزړګے مات که اوس کوشے له به ورځمه

اسرے مے شوے نیمګړے ارمانو نه م نیمګړے
دیداری نن کومه اوس کوشے له به ورځمه

درازو نیاز خبرے به بل چاسره اونه کړم
هم هاغه محفلونو ته کوشے له به ورځمه

یو څو لحظے دیدن نے کړےوو دخپل جانان
سحر به یادومه اوس کوشے له به ورځمه

# ناقلاري

نن م بيا په زړه غمونه لکه پيټي دومره بارشول
چه له ډيره درده چاته زه خپل حال وئيلے نشم

ځوک به څه قلاري ورکه خما زړه ذرے ذرے شه
په لټون شوم سترے نورے استانے کتلے نشم

که زه مړ شم نو هم خير دے چه شم خلاص د انتظاره
رنځور روح م ناقلار دے انتظار کولے نشم

خلقه مه پوښتئ خما نه خمانور هم زړه خوږيږي
اوس به بل څوک هلته درومي زه نے درله ورتلے نشم

ميخانے نه م زړه تور شه هر ساقي راپورے خاندي
حيف که ډک جامونه راکړي خويو گوټ هم کوے نشم

هر بيگا په طمعو تير کړم خو سحر هم هغه شان وي
په سلگو سلگو اوده شم نور څه حال وئيلے نشم

# لړ په قلار شه

اے لیونی زړګیه، اے صحرائی زړګیه
دمینے ډک زړګیه اے احساسی زړګیه
لړ په قلار شه! لړ په قلار شه

ژوندون م خاورے نکړے، سفر به کړم دارمان
اے خما ګرانے مینے، اے لیونی زړګیه
لړ په قلار شه! لړ په قلار شه

ته خو جانان غواړے اؤ خپل ارمان غواړے
چه د خندا م نکړے، چرته رسوا م نکړے
اے سودائی زړګیه! لړ په قلار شه

خے ته کو څو ته دیار اؤ هلته ځان غواړے
دغمه ډک زړګیه! اے فلسفی زړګیه
لړ په قلار شه! لړ په قلار شه

ما پخپل زړه لیکلی، سحر د زړه خبرے
راته به یادوی همیش لما به هیره نه شی
ستا بے خودی زړ ګیه! لړ په قلار شه

# توول جهان نه ګیله من

نه تقدیر نه مرور یم نه جانان نه ګیله من
خپل ارمان نه ګیله من یم دخپل ځان نه ګیله من
زه مجبور یمه زړ ګیه تاته هیڅ وئیلے نه شم
یو ته نه ئے څه به وائم توول جهان نه ګیله من

سپر لیه خبر نه یم چه په بر خه ځما څه دی؟
په غیږه دسپر لو کښې بے دګل نه سوا څه دی؟

د ژوند هر ے لمحے ته ډیر دلر ے نه په خیال یم
قدم په قدم غم دے اؤ د غم نه سوا څه دی؟

د ژوند په هر ډګر م د ستم پهره ولاړه
ستمونه قبلوم خود دلبر نه جدا څه دی؟

هر وخت م حسرتونه له فکرونو تپوس کاندی
هر وخت هر لمحه کښې دستم نه سوا څه دی؟

دشپو ورځو کاروان لکه دباد هسے روان دے
سحره بیوسۍ کښې د ماتم نه سوا څه دی؟

ټول جهان ته دے رسوا کړم دادے څه او کړه دلبره
بس ور ګډ دے په سودا کړم دادے څه او کړه دلبره

داځما په زړه کښ څه وو اؤ دستا په زړه کښ څه وو
خپل خيال ګډ په مشغولا کړم دادے څه او کړه دلبره

اے ربباره ورته ورشه ، داپښتنه ترينه او کړه
اشنا ګرم په څه ګنا کړم دادے څه او کړه دلبره

مينه کله څوک تللے شی د عقل په تولونو
په دا فکر سترګے واکړم دادے څه او کړه دلبره

مم رسوا شو مه بے ځايه ، بے نو اشو مه بے ځايه
حسرتو نه به دستا کړم دادے څه او کړه دلبره

دلدا ر ګړیه لړ رانجه راوړه چه داغم جنے سترګے تورے کړمه
د سترګوتورم اوبه کیږی کنه چه دانم جنے سترګے تورے کړمه

دلدار ګړیه چرته ړوندنشمه ، څمادے سترګو له رانجه راوړه
دسترګو ګاتی م خوږیږی کنه چه نن درمنے سترګے تورے کړمه

څما د سترګو کتوری ګلونه ، څما د خیال آلیونی ګلونه
موده ده مړاوے مړاوے سترګے ، چه نن نم جنے سترګے تورے کړمه

په ډیرو ډیرو فریادونو باندے ، په ډیر وډیرو هجرانونو باندے
څما د مینے سترګے سرے ختلی چه فراقنجے سترګے تورے کړمه

خالی رانجه م پکار نه دی ګله ورسره ښه اصلی کجل راوړه
[illegible] تلوار کوه چه زه سحر جانانه دازیر بخښنے سترګے تورے کړمه

# ماته او وایه رښتیا (نظم)

لږ خو سوچ او کړه دلبره چه ګنا خما دڅه وه
تا په څه کړمه رسوا؟
بس خو دغه م ګناوه چه خپل زړه م تاله در کړه
ما په لوئ جهان کښې خوښ کړې
اؤ تا لاس راکړو صنمه!
نو بیا ولې، ولې، ولې
فیصله او کړه پخپله، اے ناپوهه ناخبره
ګورے چا او لمسولے
ته اول خو ادسې نه وے
ماته او وایه دلبره، ماته او وایه دلبره
چه زړګے خما قرار شي
ګنې مړ به شم له غمه
ماته او وایه رښتیا، ماته او وایه رښتیا

څو مره ډیره موده او شوه
چه ته تللے ئې دلبره
ستا په زړه کښې مینه نیشته؟
اے بے رحمه، بے وفا
راشه لږ دخدائ دپاره، راشه لږ دخدائ دپاره
په منت در ته سر شوے
زه منت در ته کوم

راشه راشه دلربا
راشه راشه دلربا
خو اله راشه بے وفا

ساه م خیژی ستا په غم کښې
اے خمادروح آرامه
آخری سلګئ م واوره
چه یقین دے خپله اوشی
مینه مینه وی ربنتیا
تور و خاورو کښې به ګورم
تور لحد کښې به زه ګورم
خپل دمینے محبوبا، که هر څو وی بے وفا

زه به مینه مینه کړمه
زه به مینه کړمه کړمه
اے سحره! نادان دے
اؤ
په زړه کښې به ئے ساتمه
زه به مینه کړمه کړمه

دغه مے تول وس وواے زړ گیه نو رمے مه چیړه
یار دظلم کړس وو،اے زړ گیه نو رمے مه چیړه

داسز امے ډیره چه په ژوند ددے راله راکړه
قید دعمر بس وواے زړ گیه نو رم مه چیړه

کله چه غم ډیر شی په ژړا ژړائ کم کړمه
عشق دیار عبث وواے زړ گیه نو رم مه چیړه

غم دیار زیاتیږی اے سحره غو رنگونه کړی
نن خو یو په لس وواے زړ گیه نو رم مه چیړه

# ژوند خاموشه ادیره ده (نظم)

اے خما ساده زړګیه
دے غمونو لیونے کړے
زر به واغوندے یو خور کفن دخاورو
دادنیا دژړا شور دے
زندګی ټوله غمونه
عجیبه ئ توره شپے دی
عجیبه غوندے وختونه
ګورے څوک دلته لګیادی
سازوی دلته درددونه
په دے لو یه غم خانه کښې به څوک خوب او کړی دلبره

داخاموشه ادیره ده
دغمونو توره شپه ده
خو بیا هم خلق اوده دی
خلق خوب کوی سحره!
هیڅ پروائ په چانیشته
زه پخپله هم حیران ئم
چه منزل مے په کوم لوری
اؤ روان په کومه لاره
خو آخر به طوفان راشی
مونږ اوده اوده به یوسی

په یو داسې ځای به پریوزو
خاموشي به په هر تور وي
اؤ هیڅوک به هلته نه وي
نه آواز به اوریدې شي
نه په سترګو به څوک وینو
خدائیګو دا به کوم مقام وي

آخري قیصه به دلته
په دې ځای کښې شي تمامه
ګورې هلته به نور څه وي؟
وړاندې پوهه ځما نیشته
چه څه اووایم عالمه
نور م خیال په پورته نه ځي

# تنده

ددے کو څو خاوری به واخلمه زه
دخپل جانان مینه به ماته کړمه
دسرو منګو اوبه به او څښمه زه
دخپل زړګی تنده به ماته کړمه
دژوند پلو پورے به غوټه کړمه
ستادکو څو اوستادپلونو خاورے
خان په سلګو سلګو به اورسوم
آ ستاد درګټه به ماته کړمه
که دهجران اوږدیرے مینے نه م
لکه یعقوب هسے نظر لاړشی
لکه رانجه خاورے به پورے کړمه
ستادهجران پرده به ماته کړمه
یابه شهید شمه په خاوروپسے
یابه کوخو ته دجانان اورسم
خان به په وینو ختو اولړمه
آدبیلتون قلعه به ماته کړمه
ددے کو څو ،دکلی چونګ خاورے
مے دلحد اودلاش سرته کیږدی
لکه سحر قبر رنړام کوی
دخپل جانان مینه به ماته کړمه

## دنیا ورانه شوله ـــ

فکر کوم اوس به خما کوڅوله څوک راځی
هاغه خما د تموتمو دنیا ورانه شوله

فکر کوم اوس به خما محفل کښې څوک کښینی
هاغه د ښکلو محفلونو دنیا ورانه شوله

په ټول جهان او په بیوسه ژوند به څه اوکړمه
آ د درنو درنو نازونو دنیا ورانه شوله

قاصده چالره به وړے خما د زړه رازونه
دتگ راتگ اؤ سلامونو دنیا ورانه شوله

جانانه دومره سپک هم نه یم څومره تا گنړلم
بیا به درنشم د درتللو دنیا ورانه شوله

که دا مے یادوی بیا دچا په سر قسم به نه کړم
د کلکو کلکو امیدونو دنیا ورانه شوله

زړگے م ډک دے ژړا کاندمه په چغو چغو
نن هسے بیا ستا د غمونو دنیا ورانه شوله

سحره! پرېږده مه راسپړه د زړګی حالونه
په خوب کښې خوب وو دخوبونو دنیاورانه شوله

## احساس

احساس م پښنه نیولےاؤ وختونه تول خفه دی
پوښتنه چانه مه کړه انتظار کړه زه راځم

منم چه زمانه خوبے وفاده سرے هیر کړی
یاران د زمانے لږ را ایسار کړه، زه راځم

# یو ستړے مسافر یم

دے خړ دشګو دشت کښې منزلو نه لټومه
یو تږے لاروے یمه، یو ستړے مسافر یم

منزل مے نامعلومه دے خو خمه، خمه، خمه
یوازے بے اسرے یمه نیمګړے مسافر یم

د ورځے نه یریږم خاموشي رانه چاپیره
دے خو شی تشی دشت کښې یو ژړلے مسافر یم

ماښام به شی صحرا کښې زه له ورایه وار خطا یم
پړاؤ د دمے نشته، ډیر درګړے مسافر یم

زما د ژوند خبرے به رشتونه درته کاندی
دلاش چه ئے څوک نه وی هغه مړے مسافر یم

مامه آزار وے خلقه! آزار لویه ګناه ده
بے وسه بے اسرے یم چا شړلے مسافر یم

دغم پرے په لاس کښې سحر خی دمر ګی خواله
لادے دشت کښې ما دفن کړی چاوژلے مسافر یم

دا ستا دمینے په اظهار رانه جانان جداشو
خما دزړه توله قیصۍ هر یو داستان جداشو

عقل او حسن ورته لمسه او کړه اوله آخر؟
ښکاری بے ننګه او بے پته هغه ګران جداشو

ماخو بخښلے داخپل خان او داجهان په مینه
زخمی زړګی له لړ ورخمه چه ارمان جداشو

خما دی روح او وجود دواړه پښیمانه غوندے
زما آرزوئے کړه آزار چه قدردان جداشو

ماته که پته وے نو ما به هډو غړ نه کاوه
افسوس په دے جرم هغه شاه خوبان جداشو

ماته په مینه باندے شک راځی ضمیر نه منی
نن دسحر نه وفادار او خومره ګران جدا شو

# آخری بدله

امید م دادے چه جنت ته به ځم
هلته به تانه خپل بدل اخلم

هلته چه ما وته حیرانه نه یې
بوسے د حورو چه د تل اخلم

ځما د روح سره دے څه کړےدی؟
بدل به تانه په جدل اخلم

خما وجود دے لړزولے دے ډیر
بدل لتانه به یو بل اخلم

چه ملاقی شمه د حورو سحر
سیورے دے کله ادکا کل اخلم



مصنّف

نوم ، ایم طارق سحر

تعلیم ، ایم اے پښتو

(پښتو آنرز)

ایم اے اُردو

ایم اے اسلامیات

بی-ایډ

پته - محله جان خیل شاه دند نوندخو ، ضلع مردان (صوبه سرحد)